عليه وسلم فرمايي: كَانَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ ، وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي وَسَيَكُونُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُونَ ، قَالُوا : فَمَا تَأْمُرُنَا ، قَالَ : فُوا بِبَيْعَةِ الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ“

ژباړه: وو بني اسرائيل چې د هغوی سياست به انبياؤ اداره كولو چې كله به هم يو نبي وفات شو نو ځای ناستی به يې بل نبي شو او بې شكه زما نه بعد بل نبي نه راځي او زر دی چې خلفاء به راځي او ډير به راځي! نو صحابه وو عرض وكړ چې تاسې مونږ ته (دخلفاؤ باره كې) څه امر كوئ نو هغه وفرمايل تاسو د اول اول خليفه سره په بيعت كې پوره والی وكړئ، تاسو هغوی ته خپل حق وركړئ ( چې هغه د هغوی طاعت دی په شرعي امورو كې ) بې شكه الله د هغوی نه ستاسو د حقوقو په باره كې تپوس كونكی دی (كه چرته درته حقوق اداء نه كړی) (متفق عليه)

نو گوره دا حديث صفا دليل دی چې د امتونو سياست انبياؤ كولو او زمونږ د امت سياست دا نبي صلی الله عليه وسلم كولو او د هغه نه بعد دا د خلفاؤ وظيفه ده او هيڅ مور راوړی داسې دليل نه شي پيش كولی چې د الله نبي صلی الله عليه وسلم دی د شريعت نه پرته بل سياست عملي كړی وي، بلكه د هغه ټول سياست مونږ ته دشريعت په نوم راپاتې دی، د يو اسلامي نظام او د هغی د حاكم د پاره هيڅ لار نه شته پرته له دی نه چې هغه دې د شرعي سياست نه پرته بل سياست عملي كړي ،خو حماريانو او دې نورو جواليانو ته شرم پكار دی، چې د كفارو سره دوستي او د تعطيل الجهاد پروژو عملي كولو ته جهاد اوشرعي سياست وايي. يو ليدونكی دی له نزدی څخه ددې دواړو نظامونو حال وگوري، بيا به خپله پدی پوه شي، چې دوی هم لكه د نورو جمهوري مرتدينو غونډې د مخلوق په لاسو جوړ قوانين نافذكړي دي، د رب قانون ته نزدې هم نه دي ورغلي.

## حكمت څه ته وايي؟

دا شو د شرعي سياست او د حماری او جولاني سياست ترمنځه فرق، اوس راځو او بتوفيق الله المتعال د حكمت معنا او مقصود بيانوو ځكه ياد طواغيت د سياست د كليمې پشان د حكمت د كليمی د نوم نه هم ډيره غلطه استفاده كوي، تاسو وينئ چې د دوی كشرخيل د دوې هري بې غيرتی او بې دينی ته لكه څنگه چې د پياوړي سياست نوم وركوي ، نو داسې ورته د يو پوخ حكمت نسبت هم كوي، نو راځو او بتوفيق الله المتعال اوس د حكمت معنا هم ذكر كوو چې حكمت څه شی دی او څه ته وايي؟ او بيا ددی يادو مرتدو رهبرانو دا رذالت هم ورسره مقايسه كوو چې دا ريښتيا دوی حكمت عملي كوي او كه نه د حكمت خلاف دكفر او ردت په ډنډونو كې لامبو وهي!!

حكمت په لغت كې وايی پخته گی د علم او په فقاهت او زيركتيا سره كار كول او اسرار معلومول لكه لغت فرمايی: **معرفة أفضل الأشياء بافضل العلوم.**

يعنی د افضل او غوره اشياؤ پيژندنه په غوره او افضل علم او پوهه باندې

اوس كه څوگ وايی چې افضل علم څه شی دی؟

نو ځواب ښكاره دی چې افضل علم قران او سنت دی او همدا خبره قران ذكر كړې الله متعال په سُورَةُ النّحل : 125 نمبر ايت كريمه كې فرمايي: ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ.

ژباړه: اې پيغمبره بلنه وركړه خلكو ته د خپل رب د لارې په لوري په حكمت اوخايسته نصيحت سره او بحث كوه له هغوی سره په هغه طريقه چې ډيره غوره وي، بې شكه ستا پروردگار ډير ښه پوهيږي، په هغه چا چې هغه د ده له لارې څخه اوښتی دی او هغه ډير ښه پوهيږي په هغه چا چې هغه پر سمه لاره برابر دی ډيره عجيبه

ده چې دقران عظیم الشان همدا ایت دلته مرتدین او جمله باطل پرست د خپلو ناوړو اعمالو او افعالو دپاره پیش کوي، چې مونږ خو د قران موافق حکمت سره مخکې تلل غواړو نو خیر دی که نن هبت الله حدود معطل کړي او یا یې تحریف کړي او یا د مؤمنانو خلاف کفارو سره تړونونه لري او یا هم د کفارو خلاف افغانستان کې چاته د ېز اجازه نه ورکوي او یایې هم روافضو ته امام باړې پرانیستې او یا یې هم سیکانو ته مندرونه اباد کړل او یا دچینایي کافرو سره پروژې لاسلیک کوي او یا سحر او ماخام د روس او امریکې سره د دوستانه اړیکو گردانونه کوي نو دا یو حکمت دی چې غرض یې د وطن تعمیر او د طن د خلکو ترقي ده!!

دلیل هم درته زر همدا ذکر کوي چې گوره کله الله هم فرمایي چې حکمت او نرمي باندې کار کوه نو زمونږ د دې مشر دا کار هم د حکمت یو صورت دی ، چې نه غوښه سوزوي او نه کباب!! همداسې که جولاني د کفري ملتونو د رضا د حصول په خاطر چې دا نن کوم کفر ته دروازې پرانستې، نو دا یو مجبوري ده او د حکمت له لارې دا کارونه کوي، نو څه وشو که ښځه یې نن ترکیه او سعودي کې د سکولر بې دینه طواغیتو او لنډغرو په منځ کې روانه ده، او سبا روسي او امریکې ته لاړه شي هم څه خبره نه ده!؟

انا لله وانا الیه راجعون

نو لوستونکو د دوی دا خبره او د دی خبرې د پاره دا دلیل دا نور هیڅ نه دی، بلکه دا بعینه د (إنّما نَحن مُصلِحون) والا و مصداق دي نو دا چې د هبة الله و امثالهم دا کړنې دا بلکل نه حکمت او نه د حکمت د معنا او مقصود او متعلقاتو څخه دي.

نو په دې اساس راځو او په دی باندې د یو څو مفسرینو اقوال ذکر کوو چې قران کې د ذکر شوي حکمت نه مراد څه شی دی او دلته چې هیبتوف او احمق جولاني چې دا کوم څه ته حکمت وایې دا څه شی دی!؟

نو راځو او د حکمت صحیح معنا ذکر کوو:

علامه ابن الجوزی په تفسیر زاد المسیر کی فرمایی: وفي المراد بالحكمة ثلاثة أقوال: أحدها: أنها القرآن، رواه أبو صالح عن ابن عباس. والثاني: الفقه، قاله الضحاك عن ابن عباس. والثالث:النبوة، ذكره الزجاج.

ژباړه : او په مراد کې د حکمت نه درې اقوال نقل دي یو په هغې کې دا دی چې حکمت قران دی او دا ابو صالح د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړی او دویم قول دا دی چې مراد د دی نه فقه د شریعت ده او دا ضحاک د ابن عباس رض نه روایت کړی دی او دریم قول دا دی چې د حکمت نه مراد نبوة دی او دا د زجاج قول دی. وگوري تفسیر (زاد المسر ۲/۵۹۵)

نو اوس دی مسلمانان لوستونکي عام او د امارت او جولاني مرتد لنډه غر خاص وگوري چې دوی د خپل احبارو او رهبارو کفریاتو ته د حکمت نوم ورکوي، آیا دا حکمت د دوی قران دی؟ که احادیث دي؟ او که ددی دواړو نه مأخوذ فقه؟ د امت په فقهاؤ کې له یو څخه ددی جواز دوی پیش کولی شي؟

راځو د حکمت د تعریف په پار د بل مشهور مفسر قول ته علامه مفسر قرطبی رحمه الله فرمایي: ادع إلى سبيل ربك بالحكمة والموعظة الحسنة وجادلهم بالتي هي أحسن إن ربك هو أعلم بمن ضل عن سبيله وهو أعلم بالمهتدين فيه مسألة واحدة- هذه الآية نزلت بمكة في وقت الأمر بمهادنة قريش، وأمره أن يدعو إلى دين الله وشرعه بتلطف ولين دون مخاشنة وتعنيف، وهكذا ينبغي أن يوعظ المسلمون إلى يوم القيامة. فهي محكمة في جهة العصاة من الموحدين، ومنسوخة بالقتال في حق الكافرين. وقد قيل: إن من أمكنت معه هذه الأحوال من الكفار ورجي إيمانه بها دون قتال فهي فيه محكمة. والله أعلم.

ژباړه : دې ایت کې چې {و ادع الی سبیل ربک....} دی په دې کې یوه مسأله ده او هغه دا چې دا ایت نازل شوی وو په مکه کی کله چې مشرکانو دمهادنی یعنی د نرمی خبری شروع کړی نو الله متعال (خپل نبي صلی الله علیه وسلم ته) امر وکړ چې ته

دعوت ورکړه دین دالله او شریعت د هغه ته په نرمۍ او اسانۍ سره، بغیر د سختۍ او تنګۍ نه او همدا ډول پکار ده، چې مسلمانانو سره تر قیامته په نرمۍ د حق طرف بلنه ورکړای شي نو دا په حق د عصاتو موحدینو کې محکم (یعنی د عمل وړ ایت) دی او منسوخ دی، په حق د کافرانو کې (په ایت دقتال سره) او دا هم ویل شوي دي، چې که چرته چاته داسې یو چانس د داسې کفارو متعلق میسر شي، چې د ایمان راوړو امید ترې کیدای شي، بغیر له قتال نه نو بیا دا ایت ددی قسم کفارو په حق کې هم محکم دی.

(تفسیر القرطبی: ۲۰۰/۱۰)

نو د قرطبي رحمه الله د تفسیر نه معلومه شوه، حکمت نه مراد قران دی او قران د کفارو سره صرف د قتال په ژبه خبرې کوي، نه چې کفارو ته دی چاپلوسیاني او هغوي سره دې دوستي او هغوی ته دې د هغوی د امنیت د چوکیدارۍ تېر ووهل شي، دا خو بالله العظیم لوی او شکاره ردت، چټل ناولی کفر دی، اعاذنا الله وجمیع الموحدین من ذلک.

همدا ډول بل مشهور مفسر علامه بغوي رحمه الله فرمایي: ادع إلى سبيل ربك بالحكمة، بالقرآن، والموعظة الحسنة،يعني مواعظ القرآن وقيل: الموعظة الحسنة هي الدعاء إلى الله بالترغيب والترهيب. وقيل: هو قول اللين الرقيق من غير تغليظ ولا تعنيف.

ژباړه : دعوت ورکړه لارې د رب خپل ته په حکمت سره، یعنې په قران سره او په موعظه حسنه سره ، یعنې د قران په وعظونو سره او دا هم ویل شوي، چې د موعظه حسنه نه مراد دا د دعوت ورکول دي، د الله طرف په ترغیباتو او ترهیباتو سره او دا هم ویل شوي، چې دا نرمه او پسته لهجه باندې خبرې کول دي بغیر د سختۍ اوشدت څخه.

بیا بغوی رحمه الله د **وجادلهم بالتي هي أحسن**، تفسیر کوی فرمایي: وخاصمهم وناظرهم بالخصومة التي هي أحسن أي أعرض عن أذاهم ولا تقصر في تبليغ الرسالة والدعاء إلى الحق، نسختها آية القتال.

ژباړه: او بحث او مناظره کوه د دوی سره په هغه طریقه چې هغه ډیره خایسته وي، یعنې د هغوی د ضررونو نه مخ اړوه او د رسالت په تبلیغ او حق دین طرف په دعوت کې کوتاهي مه کوه، خو دا حکم د نرمۍ د قتال ایت منسوخ کړی دی.

(تفسير البغوي 3/103)

لوستونکي دې د مفسر ابن الجوزي علامه مفسر قرطبي او د علامه بغوی رحمهم الله د دې ټولو تفاسیر ددی ایت متعلق وګوري او بار بار دې وګوري دا ټول په دی متفق دي، چې د حکمت نه مراد قران او سنت بیانول او د هغی عملي کول دي، او دا د جمله تفسیرونو خبره ده هیڅ داسې معتمد تفسیر به څوک داسې وړاندې نه کړای شي، چې هغې کې د حکمت دا معنا وي چې ته دې د کفارو سره دوستي او د ملل ملحده د قانون موافق چلند ته اماده شه او حواله په قران ورکوه چې الله فرمایي چې **(وادع الى سبيل ربك بالحكمة)** دا خو نعوذ بالله د کفر د جواز کوشش کول دي د قران څخه.

بل ددې ایت سره متصل چې د موعظه حسنة متعلق هم کوم تفسیر او مراد ذکر کړی مفسرینو هغه هم تاسې ولیده ، دا نرمي هم داسې نه ده چې ته ورته د شریعت نه ورتیر شه



لکه نن چې د طالباني حمارت او د جولاني د جمهوریت دریځ دی.
سره د دې چې د کفارو سره دا نرمي دا نرمي ذکر ده نو دا حکم منسوخ دی او دا منسوخ والی هم د مفسرینو په نزد اتفاقي دی.
البته د قرطبي رحمه الله عبارت کې د تمریض په صیغې سره ذکر شو چې هغه فرمایي که بالفرض چرته کومه ډله کفار داسې وي، چې د ایمان د راوړو امید یې کیدایشي، نو بیا دې د قتال پرځای ورسره د نرمۍ نه کار واخستل شي نور د کفار وسره د قتال ایاتونو دا حکم هم منسوخ کړی دی.
نو اوس خوګ شته چې له حماریانو او جوالیانو څخه دا پوښتنه وکړي چې دا د کوم حکمت او سیاست نوم دی چې د فلسطین مسلمانان دې په اورونو کبابوي او تاسې دې ورسره دوستي کوئ.
د شام او عراق اهل السنت دې په ټپونو ټپونو بمونو وریتوي خو تاسې، ورسره د ملل ملحده په اصولو برابر سفارتي روابط ساتئ، چې اصل کې دا د هغوی سره د ژورې دوستانې ثبوت او دلیل دی. افریقا او سومالیا کې دې د موحدینو خلاف کفار ایتلافونه کوي او تاسې ورسره د حکمت او سیاست په نوم دوستي او ورورګلوي کوئ.
په ایغور، فلپین، هندوستان ایران او بورما په شمول د نړۍ په هر ګوټ کې دې د مسلمانانو غوښې له هډونو جدا کوي ،خو تاسې ورسره اوګې جنګوئ او یو بل ته هدیې او تحفې ډالۍ کوئ.
آیا دا ریښتیا هم هماغه حکمت دی کوم چې قران کې ذکر دی؟ دا هما غه حکمت دی د کوم باره کې چې د مفسرینو اقوال تاسې ملاحظه کړل؟ نو معلومه شوه چې د دوی دا ناوړه اعمال نه حکمت دی او نه عادل او شرعي سیاست، بلکه دا هغه ښکاره کفر ردّت او نجس ضلالت دی چې فکر نه کوم په تاریخ کې ساری ولري.
نو د حمارت کشرخیلو ته د احمق جولاني او د هیتوف صوفي دا ښکاره ردتونه نه ښکاري؟ چې دوی یې اوس هم د مسلمانانو په نوم نوموي او د ضلالت په بیعت کې یې ځانونه نښلولي دي.
که دوی بیا هم دحکمت او سیاست له کلیمو څخه په غلطه معنا اخستو سره دوکه شوي وي، نو دا خیر خواهي به یې بیا وکړو او لږ به ورته د دوی د رهبرانو او د دوی د نظام کړني او مادي بیا ورپه ګوته کړو ترڅو د رب ورکړې فکر څخه کار واخلي او حق درک کړي او ملګرتیا یې وکړي او د کفر او ردت د ناولو غړوندیو څخه خپل غاړه ازاده کړي او د خپلو دغه مشرانو هر صریح کفر او ردت د حکمت او سیاست په نوم قبول نه کړي.
نو واورئ د ځمکې په مخ چې د جمله کفري او مرتدو دولتونو په څېر د احمق جولاني او هبة الله مشرک او د دوی د نظامونو خلاف چې په مسلمانانو جهاد په کومو أسبابو او علتونو فرض عین ګرځیدلی، هغه علتونه او اسباب په لاندې ډول دي: دملل ملحده عضویت او په هغې کې داخلیدل او یا هم هغې کې د دخول عضویت تمنا لیوالتیا او درخواستونه کول! د ملل ملحده په جغرافیایي تقسیم ایمان راوړل او د هغې د قانون د پریکړې موافق یوه لویشت مخکې او یا وروسته تلل جرم ګڼل.
د ځمکې په مخ د جمله کفارو سره دوستي کول او په خلاف یې جهاد کول غندل او د مجاهدینو مخه نیول.
د رب رالیږلي ټول حدود معطل کول او یا هغه په بل قانون بدلول او یا په هغې کې تحریف کول لکه د غل مخ تورول او په خر یې سپرول، نکاح لرونکي زاني او زانیة په درو وهل وغیره ... د بینکونو نظام په سودي سیستم سره چلول او همغسې فعال ساتل او په سودي حساب سره پانګونه کول او اقتصاد جوړول.
د عامو و لسونو د مالونو څخه د ټکسونو په نوم مالونه اخستل چې دا هم یو اتفاقي حرام کار دی او اهل علم د دی په جواز باندې اعتقاد لرونکي ته کافر وایي، دکفري اقلیتونو احترام او درناوی منل او د هغې تقدس او احترام کول، حکم په تحت السلطه

مناطقو کې کفارو او مشرکینو ته د هغوی د کفریاتو او شرکیاتو عامه اجازه ورکول لکه کلیسا ګانې، امام باړې، درمسالونه، مندرونه، د پیر پرستی زیارتونه او شرکي مراکز ابادول. چې کله یو مجاهد راپورته کیږي او د رب شریعت نافذول غواړي نو دوی د هغه مخه نیسي او نه صرف دومره بلکه قتل یې رواه او جایز ګڼي دکفارو رضائت حاصلول او په هغې کې عزت لټول او هغه د کامیابۍ او ترقۍ موجب او سبب ګڼل، تلک عشرة کاملة، نور هم زیات دي خو چې دا لس ذکر شوي اسباب اصل کې د اسلام او ایمان هغه نواقض دي، چې د دی په سبب د دوی په خلاف په مسلمانانو جهاد فرض عین ګرځیدلی اګر که دوی ورته د حکمت او یا هم د سیاست نوم ورکوي خو له دې څخه تعبیر په کفر او ردت سره کول پکار دي او که د سیاست او حکمت نوم ورکوي نو بیا به شیطاني سیاست او حکمت وي نه **شرعي سیاست او قراني حکم. وبالله تعالی التوفیق والحمد لله رب العالمین وصلی الله علی خیر خلقه محمد وعلی آله صحبه وسلم**



قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ

ژباړه: ستاسي لپاره د ابراهيم او د هغه د ملګرو (په کيسه) کښې يوه غوره نمونه ده، چي هغوی خپل قوم ته په ډاګه وويل: "موږ له تاسي او ستاسي له دغو معبودانو څخه چي د الله پر ځای يې بندګي کوئ، په ټينګه بېزار يوو. موږ ستاسي څخه منکر شوي يوو او زموږ او ستاسي تر منځ د تل لپاره دښمني او کرکه ښکاره شوې ده ترڅو چې تاسي په يو الله ايمان را نه وړئ

سورة ممتحنة (4)

**د خراسان غږ مجلې درونو لوستونکو! دیوبندیان څوک دي؟ د علمي او تحقیقاتي لړۍ په لړ کې مو د خراسان غږ مجلې په تیره ۳۵ ګڼه کې د ذکر شوې سلسلې یولسمه برخه لوستې وه ، اوس مو د همدې سلسلې د دولسمې برخې لوستو ته رابولو.**

## بربنډ مړی

همدا رنګه یوه کیسه له مولوي عبد الرشید څخه واورئ: مجھ سے میرے محترم دوست اور حضرت کے خویش الحاج اشرف علی صاحب نے بیان فرمایا کہ حضرت نے ارشاد فرمایا ایک امیر زادہ نوجوان شخص تھے۔ ان کی زندگی بہت ہی لا ابالی پن میں گزری۔ ان کا جب انتقال ہو گیا تو میں ایک دن قبرستان گیا تو اس شخص کو دیکھا کہ قبرستان میں ننگا بیٹھا ہے اور بہت ہی حسرت و یاس کے عالم میں ہے۔ جب میں قریب پہنچا تو اس نے ہمیں دیکھ کر اپنی ستر دونوں ہاتھوں سے چھپالی۔ میں نے اس سے کہا اسلئے نہ میں تجھے کہتا تھا لیکن تو نے اپنے زندگی لاپرواہی میں گزار دی اور میری باتوں کی طرف دھیان نہ دیا۔ [نقیب پھلواری کا مصلح امّت نمبر ص19]

ژباړه: ما ته زما محترم دوست او د حضرت صاحب خپلوان الحاج مولوي اشرف علي صاحب دا بیان کړی دی چې حضرت صاحب فرمایي: د یو مالداره سړي زلمی ځوی و او د هغه ژوند په ډېر غفلت (بې پرواهۍ) کې تیر شوی و، کله چې هغه وفات شو نو زه یوه ورځ هدیرې ته لاړم او هغه مې وکتلو چې په هدیره (مقبره یا قبرستان) کې بربنډ ناست و او هغه په ډېره حیرانۍ او ارمان کې ناست و، زه چې کله هغه ته ورنږدې شوم نو خپل عورت یې په دواړو لاسو پټ کړ، ما هغه ته وویل: له دې امله ما درته څه نه ویل، که نه تا خپل ژوند په ډېر غفلت او بې پرواهۍ کې تیر کړی و او زما خبرو ته دې هیڅ پاملرنه نه وه کړې.

دا خو کمال دی چې د برزخ پردې هم د دوی لپاره هیڅ اهمیت نه لري او بیا خو دا مطلب دی چې مړی په کوم ځای کې وغواړي، هغه ځای ته سفر کولای شي نو بیا د بریلیانو څه ګناه ده کله چې هغه دا وایي: د هرې جمعې په شپه روحونه کورونو ته راځي او په دې ځای کې روح له بدن سره چکرونه وهي او بیا له کالو یا لباس څخه ناراضه یا د ملنګ جوړېدو خواهش یا د دوزخیانو لباس هم نه دی ورکول شوی، حال دا چې په قبر کې د الله دا حکم دی چې ګناهګاراونو ته **(أَلْبِسُوهُ مِنْ النَّارِ)** یعنې هغوی ته د اور جامې واغوندئ او یا د حضرت نظر دومره لرې رسیدلو چې له جامو څخه بل لوري ته د هغه عورت هم لیدلی شي او دا سوچ نه کوي چې کله د حضرت نظر د برزخ دا پردې څیرلي دي نو د هغه د لاسونو به څه حال وي؟ او دا کیسه یوازې مړو پورې خاص ده که نه د دوی پیران ژوندي خلکو بدنونه هم ویني؟ د دین څخه یې توقې جوړې کړې دي!! والله المستعان.

## له ویلو پرته د مړي قبر معلومل

دا واخلئ د برزخ له غیبو څخه په یو غیب خبرېدل چې هغه له ویلو پرته د مړي قبر معلوم کړی و: د مړي قبر حکیم مولوي محمد یوسف ګنګوهي وایي: ایک درویش کا یہ طرز دیکھا کہ وہ کسی بزرگ کے مزار اندر نہیں جاتے تھے بلکہ مزار کا قریب دروازے سے باہر کھڑے ہوکر رویا کرتے تھے۔ حکیم صاحب کو خیال آیا کہ ان کو مولانا رشید احمد صاحب رحمہ اللہ علیہ کے مزار پر لے چلیں اور ظاہر نہ کریں ایک مسجد جو مولانا رشید احمد کے مزار کے قریب بنی ہوئی تھی۔ فرش مسجد کے شمالی کنارے پر جس وقت یہ درویش پہنچے۔ نہایت زور سے اس درویش نے چیخ ماری اور کھڑے ہوکر شدت سے روتے رہے جب درویش صاحب واپس ہوئے تو حکیم صاحب سے فرمایا ایسا نہیں کیا کرتے ہیں جیسا کہ آپ نے میرے ساتھ کیا۔ بعض وقت ایسے موقع پر جان نکل جاتی ہے۔ انسان کو جب کسی بزرگ کے مزار کی خبر ہو جاتی ہے تو کچھ سنبھل کر چلتا ہے۔ یہ حضرت مولانا رحمتہ اللہ علیہ کا مزار ہے کہ حضرت ممدوح نے شریعت کے پردے میں اپنی نسبت عالیہ کا اخفا فرمایا تھا۔ [ارواح ثلاثه ص322]

ژباړه: ما یو ملنګ داسې لیدلی و چې هغه به د هیڅ یو بزرګ زیارت ته نه ورننوتلو بلکې د زیارت له دروازې څخه د باندې به یې ژړل، حکیم صاحب دا فکر وکړ چې د مولانا رشید احمد ګنګوهي صاحب قبر ته یې له ځان سره بوځه او په دې یې مه پوه کوه چې دا د مولانا رشید زیارت ده، یو جومات چې د مولانا رشید احمد صاحب له زیارت سره نږدې جوړ شوی و، کله چې ملنګ د جومات شمالي څنډې ته ورسید نو په ډیر لوړ غږ یې چغې ووهلې، په همدې ځای ودرید او ډیر سخت یې وژړل، کله چې ملنګ صاحب بیرته را وګرځېدلو نو حکیم صاحب ته یې وویل: څوک داسې نه کوي لکه څنګه تا چې ما سره وکړل ځکه په داسې ځینو وختونو کې انسان له منځه ځي. کله چې یو څوک د کوم بزرګ له قبر څخه خبر وي نو هغه په ډیر احتیاط سره هغه ځای ته ورځي، دا د حضرت رحمة الله علیه زیارت دی چې حضرت ممدوح رحمه الله د شریعت په پرده کې خپل لوړ نسبت پټ ساتلی و.

دا عقیدې د همدې خلکو دي او بیا دا عقیده په دومره لوړه کچه مینوال هم لري، حسبنا الله ونعم الوکیل

## روحونو سره ملاقات

یو دیوبندي عالم لیکي: مسلمانان ہند کی پوری تاریخ میں اکابر دیوبند نے عقائد کو جس انداز میں نکھارا ہے اس کی تحسین آپ مجدد الف ثانی کی روح سے مراقب ہو کر معلوم کر لیں۔ [انکشاف ص463]

ژباړه: د هند د مسلمانانو په تاریخ کې چې د دیوبند علماوو چې په کوم شایسته انداز کې عقائد وړاندې کړي دي، د دې ستاینه تاسو د مجدد الف ثاني رحمه الله له روح سره په مراقبه کېدو کې معلومولای شئ.

په یو ځای کې د دیوبندي عالم قلم په داسې انداز سره لیکل کړي: دنیا جانتی ہے کہ اکابر دیوبند جیسے حضرت مولانا نانوتوی، حضرت مولانا گنگوہی، مولانا اشرف علی تھانوی، حضرت مولانا یعقوب صاحب، حضرت مولانا محمود الحسن وغیرہ اپنے زمانے کے عالم و محدث ہی نہیں تھے۔ بلکہ باطنی علوم کے بہت بڑے امین و محافظ تھے۔ [انکشاف ص24]

ژباړه: دنیا پوهیږي چې د دیوبند مشران علماء؛ لکه مولانا نانوتوي، حضرت مولانا ګنګوهي، مولانا اشرف علي تهانوي، حضرت مولانا یعقوب صاحب، حضرت مولانا محمود الحسن او نور... یوازې د خپلې زمانې عالمان او محدثین نه وه بلکې هغوی د باطني علومو هم ډیر زیات محافظین او امانت دار وه.

مسلمانانو ورونو! شفاء ورکول دا یوازې د الله صفت دی، لکه څنګه چې ابراهیم صلی الله علیه وسلم فرمایي: ﴿وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ﴾ [سُورَةُ الشُّعَرَاء: 80] ژباړه: او کله چې مریض شم نو دغه الله ما ته شفاء راکوي.

دا خبره نه ده چې په نورو زمانو کې به شفاء الله ورکوله او په دې زمانه کې د شفاء د خزانو مالکان نور خلک دي؛ نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي: **(إذهب البأس، رب الناس، واشف أنت الشافي لا شفاء إلّا شفاءك)** [صحیح البخاري کتاب المرضی] ژباړه: دا ناروغی لرې کړه؛ اې د خلکو ربه! او شفا ورکړه ته شفاء ورکونکی یې او ستا شفاء حقیقي شفاء ده.

خو په دې ځای کې د دوی د حضراتو شان دومره لوړ دی چې له ناروغۍ څخه د خلاصیدو او شفاء لپاره حضرت صاحب ته رجوع کیدای شي او حضرت صاحب هم کله خلکو ته شفاء ورکوي او کله څوک په ازموینت کې غورځوي؛ ډول، ډول کیسې واورئ.

## شفا د امامانو په لاس کې

د تذکرة الرشید مصنف لیکي: حاجی دوست محمد خان دہلوی، مولوی رشید احمد صاحب گنگوہی کے ایک نہایت مخلص خادم تھے۔ ایک بار ان کی اہلیہ کی طبیعت سخت خراب ہو گئی۔ ہاتھ پاؤں کی نبضیں چھوٹ گئیں، غشی طاری ہو گئی اور تمام جسم ٹھنڈا ہو گیا۔ حاجی صاحب کو اہلیہ کے ساتھ محبت زیادہ تھی بے قرار ہو گئے۔ پاس آکر دیکھا تو حالت غیر تھی۔ صرف سینہ میں سانس چلتا ہوا محسوس ہوتا تھا۔ زندگی سے مایوس ہو گئے۔ رونے لگے اور سرہانے بیٹھ کر یسین شریف پڑھنی شروع کر دی۔ چند لمحے گزرے تھے کہ دفعتہ



مریضہ نے آنکھیں کھول دیں اور ایک لمبا سانس لے کر پھر آنکھ بند کر لی۔ سب نے سمجھ لیا کہ اب وقت اخیر ہے ۔ حاجی دوست محمد خان اس حیرت ناک نگاہ کو نہ دیکھ سکے۔ بے اختیار وہاں سے اٹھے اور مراقب ہو کر حضرت امام ربانی کی طرف متوجہ ہوئے کہ وقت آگیا ہو تو خاتمہ بالخیر ہو اور زندگی باقی ہے تو یہ تکلیف جو متواتر تین دن سے ہو رہی ہے رفع ہو جائے۔ مرقبہ کرنا تھا کہ مریضہ نے آنکھیں کھول دیں اور باتیں کرنی شروع کر دیں۔ نبضیں ٹھکانے آگئیں اور افاقہ ہو گیا دو تین دن میں قوت بھی آگئی اور بالکل تندرست ہو گئیں۔

حاجی صاحب مرحوم فرماتے تھے کہ جس وقت مراقب ہوا حضرت کو اپنے سامنے پایا اور پھر تو یہ حال ہوا کہ جس طرف نگاہ کرتا ہوں، حضرت امام ربانی کو بہ ہیئت اصلیہ موجود دیکھتا ہوں ۔ تین شبانہ روز یہی حالت رہی۔ [تذکرہ ج4/ص441]

ژباړه: حاجي دوست محمد خان دهلوي، د مولوي رشيد احمد ګنګوهي صاحب يو ډېر زيات مخلص خدمت کوونکی و، يو ځل د هغه د کور وداني (ښځې) طبيعت سخت خراب شو، د هغې د لاسونو او پښو نبض ورک شو، بې هوښي ورباندې راغله او ټول جسم يې يخ شو، د حاجي صاحب له خپلې ښځې سره ډېره مينه وه نو هغه ډېر زيات ناکراره شو، د هغې څنګ ته چې ورسېد نو حالت يې خراب و، يوازې په سينه کې يې ساه چلېده او د هغې له ژوند څخه مايوسه و، په ژړا شو او د هغې سر ته يې سورت يس پيل کړ، لږ وخت وروسته ناڅاپه هغې خپلې سترګې وغړولې او له يوې ژورې ساه اخيستو وروسته يې سترګې پټې کړې، ټول په دې پوهه شول چې دا د هغې وروستی وخت دی، حاجي محمد خان صاحب دا وروستی حالت په سترګو نشو ليدلای نو بې اختياره له دې ځايه پاڅېده او د رباني امام په لور مراقبه شو چې که وخت يې پوره وي نو چې خاتمه يې په خير شي او که نور وخت يې پاتې وي چې دا نورې ورځې ورباندې په خير او عافيت سره تيرې شي او د دې ورځو تکليف ورڅخه پورته شي، دا مراقبه کول و چې ناروغ سترګې وغړولې، خبرې يې پيل کړې او نبض يې حرکت پيل کړ او بې هوښي يې پای ته ورسيده، په دوه، درې ورځو کې يې قوت بيرته راوګرځيد او روغه رمټه شوه.

حاجي صاحب مرحوم فرمايي: کله مې چې مراقبه وکړه نو حضرت صاحب مې خپلې مخې ته وموند او بيا يې دا حال و چې کوم طرف ته مې نظر اړولو نو حضرت رباني امام به مې په اصلي څېره کې خپلې مخې ته موندلو، درې ورځې شپې همدا حالت و.

په دې جملو کې لږ فکر وکړئ چې د هغې حالت بدل و، د هغې له ژوند څخه مايوسه و، جسم يې يخ شوی و. کله چې يو مسلمان داسې حال ته ورسيږي نو خپل خپلوان يې د الله طرف ته رجوع کوي خو په دې ځای کې ديوبندي حاجي... او بيا د حضرت صاحب د کور وداني حال داسې دی چې نبض يې ورک ده، يوازې په سينه کې يې ساه چليده، د داسې حالت يادونه الله عزوجل څه داسي کړې ده: ﴿كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ﴾ 26 ﴿وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ﴾ 27 ﴿وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ﴾ 28 ﴿وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ﴾ 29 ﴿إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ﴾ 30 [سُورَةُ القِيَامَةِ: 26...30]

ژباړه: کله چې روح مرۍ ته ورسيږي او خلک دا وواي چې دم کونکی څوك دی او د دغه انسان يقين پيدا شي چې دا جدايي ده او د هغه يوه پنډۍ له بلې پنډۍ سره يو ځای شي، په دې ورځ پوهه شه چې يوازې يو الله ته ورګرځېدل دي.

اوس د بيا راګرځېدو پوښتنه پيدا کيدای نشي؛ لکه الله فرمايي: ﴿فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ﴾ 83 ﴿وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ﴾ 84 ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ﴾ 85 ﴿فَلَوْلَآ إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ﴾ 86 ﴿تَرْجِعُونَهَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ 87 [سُورَةُ الواقِعَة: 83...87]

ژباړه: او کله چې د انسان روح مرۍ ته ورسيږي، او تاسو په دغه وخت کې دې انسان ته ګورئ، او مونږه دې مړ کيدونکي انسان ته ستاسو څخه ډېر نږدې يو، خو تاسو نه ګورئ او تاسو د هيچا څه مرسته نشئ کولای، که تاسو ريښتيني

یاست نو دا روح راوګرځوئ.

اوس باید د قران خبره ومنل شي او که د دیوبندي حضراتو خبره؟ او د مخلص خادم مراقبه کېدل د رشید احمد صاحب لور ته او پاملرنه کول؛ دا غوښتنه ورځخه کول چې که وخت یې پوره وي ده خاتمه په خیر باندې شي او که څه ژوند پاتې وي نو تکلیف ورځخه لرې کړای شي، دا د کومې خبرې دلیل دی؟ نو دا د دې خبرې دلیل دی چې کله مرید د خپل پیر صاحب لور ته پام وکړي نو پیر صاحب خبرېږي او دا شرك دی. دلته خو پیر صاحب ته د ناروغ د مرګ علم هم شته یا خو د تقدیر لیك د هغه مخې ته پروت دی او یا هغه د مرګ او ژوند مالك دی، شفاء هم د هغه لاس کې ده او د دې ثبوت دا جملې دي "مراقبه کول و او هغه را بیداره شوه، بیا روغه رمټه شوه او بیا د پیر صاحب کمال دا دی چې هغه ورته په هر ځای کې حاضر او ناظر ښکاري".

## حسين احمد صاحب شفاء ورکونکی!!!

یوه بله کیسه چې د هغې نازك حالت به خوند درکړي، کومه چې د حسین احمد مدني صاحب یو مرید ډاکټر، حافظ، محمد زکریا صاحب بیان کړې ده: میرے پیر بھائی کی حالت نہایت سنگین ہوگئی- میں بحیثیت معالج بلایا گیا تو دیکھتا ہوں کہ جسم بالکل بے حس و حرکت ہے آنکھیں پتھرا گئیں ہیں- آثار مرگ بظاہر نمایاں ہیں- یہ منظر دیکھ کر میں پریشان اور بے چین سا ہو گیا- نا گہاں مریض رفتہ رفتہ اپنا ہاتھ آٹھا کر کسی کو سلام کرتا ہے- پھر کہتا ہے حضرت یہاں تشریف رکھئے کچھ ہی دیر بعد اٹھ کر بیٹھ جاتا ہے اور اپنے والد وغیرہ سے کہتا ہے کہ حضرت کہاں تشریف لے گئے؟ جواب میں لوگ کہتے ہیں کہ حضرت تو یہاں تشریف فرما نہیں تھے وہ حیرت سے کہتا ہے کہ حضرت تو تشریف لائے تھے اور میرے چہرے اور بدن پر ہاتھ پھیر کر فرمایا تھا کہ اچھے ہو جاؤ گے گھبراؤ نہیں- (ڈاکٹر صاحب کا بیان ہے) کہ ابھی میں بیٹھا ہی تھا کہ دیکھتا ہوں کہ بخار ایک دم غائب ہے اور وہ بالکل تندرست اچھا ہے- جامع کہتا ہے کہ حضرت کی ادنی کرامت ہے- اس سے اندازہ ہوتا ہے کہ حضرت کو اپنے خاص (مریدین) سے کیسا گہرا تعلق ہوتا تھا- [شیخ الاسلام ص164]

ژباړه: زما د پیر ورور حالات ډېر خراب و او زه د یو ډاکټر په حیث وغوښتل شوم نو ما وکتل چې د هغه ټول بدن بې حرکته او بې حسه و، سترګې یې ډوبې شوې وې او د مرګ نښې ورباندې را ښکاره شوې وې، د دې حالت په لیدو سره زه هم ډېر خفه او ورخطا شوم، ناڅاپه ناروغ لاس اوچت کړ او چا ته یې سلام کولو او ویل یې: حضرت صاحب دلته کینه. لږ وروسته پاڅېدو او کیناستو او خپل پلار او نورو خلکو ته یې وویل: حضرت صاحب! چیرته لاړ؟ په ځواب کې خلك ورته وایي: حضرت خو بیخي دلته راغلی نه دی، هغه په حیرانتیا ځواب ورکړ: حضرت صاحب خو دلته راغلی و او زما په مخ او بدن باندې یې لاس راښکلو او ما ته یې وویل: ته به روغ شې او مه ډارېږه. دا ډاکټر صاحب وایي چې زه هلته ناست وم چې د هغه څخه تبه مکمله ختمه شوه او هغه روغ رمټ شو، د کتاب مصنف دا خبره کوي چې دا د حضرت صاحب یو وړوکی شان کرامت و، له دې څخه معلومېږي چې د حضرت صاحب له خپلو خاصو مریدانو سره څومره خاص روابط و.

د حضرت صاحب تشریف راوړلو ته که څوك د مریض وهم او ګومان ووایي نو دیوبندي حضرات د دې خبرو منلو ته تیار نه دي، د شیخ راتلل او مریض ته شفاء ورکولو ته د حضرت صاحب یو وړوکی کرامت وایي. بیا یې دومره سوچ نه دی کړی چې دا د توحید له عقیدې سره څومره ټکر او خلاف خبره ده، د سلهاوو میله واټن په شتون کې د ناروغ ناروغي معلومول، بیا هغه ځای ته حاضریدل او په یو داسې انداز سره راتلل چې یوازې ناروغ هغه لیدلی شي او د نورو خلکو له نظره پټ وي، دا ټولې خبرې له علم غیب او تصرف څخه پرته کله امکان لري؟! د شفاء ورکولو دغه نسخه چې یو لور ته یې په ناروغ لاس کیښود او بل لور ته ناروغ بلکل روغ جوړ شو. که د دې نوم هم الهي تصرف او قدرت نه وي نو بیا هغه

الهـي اختيـارات كـوم دي؟! او د دې سړي په مسيحي قدرت كې دومره زور له كوم ځاى څخه پيدا كيداى شي چې كوم جسم بلكل بې حسه او بې حركته و، سترګې يې ډوبې شوې وې او د مرګ نښې وربانديې را ښكاره وې، په دې وخت كې يې دا دعوه وكړه چې مه ډارېږه او ته به اوس ښه شې، د دغه متأثرينو شيخ پالنه وګوره چې كوم غيبي طاقت، تصرف او اختيار د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په حق كې نه و نو هغه د دوى د حضرت صاحب يو معمولي شان كرامت و. (انا لله وانا اليه راجعون).

حسين احمد مدني صاحب فرمايي: میری لڑکی ریحانہ کی عمر 5'4 سال تھی، گلسوئے نکلے اور تمام چہرہ متورم ہوگیا تھابخار بہت تیز تھا۔ڈاکٹر نے مرہم لگا کر روئی کے پہل رکھ کر پٹی لگا دی تھی۔ لڑکی بخار کی شدت کی وجہ سے غافل تھی۔ دفعتاً اس نے چیخنا شروع کیا۔ کہ مولانا دادا آئے ہیں۔ مولانا دادا آئے ہیں۔ اٹھ بیٹھی اور پٹی نوچنی شروع کر دی۔ ہم لوگ پریشان ہو گئے کہ سر سام ہوگیا ہے۔ لیکن ہماری حیرت کی کوئی انتہا نہ رہی جب تھوڑے عرصے کے بعد نہ بخار تھا او نہ ورم، ریحانہ بالکل اچھی تھی حالانکہ اس نے اپنے ہوش میں حضرت کو دیکھا بھی نہ تھا۔ [شیخ الاسلام ص76]

ژباړه: زما د ريحانې لور عمر به 4 يا 5 كاله و، په هغې دانې راښكاره شوې وې او ټول مخ يې له دانو ډك شوى و، ډېره سخته تبه يې وه، داكټر وربانديې ملهم (مرهم) ووهل او د مالوچو پټۍ يې پرې كېښوده، كوچنۍ د سختۍ تبې له امله په ځان نه پوهيده، ناڅاپه يې چغې پيل كړې چې نيكه مولانا راغۍ! نيكه مولانا راغۍ! كيناسته او د خپلې پټۍ شكول يې پيل كړل، مونږ او حاضر خلك هم ورخطا شوو چې په دې به سرسام ناروغي راغلې وي خو زمونږ د حيرانتيا پاى نه و چې كله يې لږ وروسته نه تبه وه او نه پرې دانې وې او ريحانه سمه دمه روغه وه، حال دا چې هغې هوش كې (نيكه مولانا) ليدلى هم نه و. نو دې كوچنۍ معصومې انجلۍ ته څنګه معلومه شوه چې دا نيكه مولانا دى؟ د معما دا غوټه ديوبندي حضرات خلاصولاى شي.

## د شفاء وركولو واك

واخلۍ، يوه بله كيسه واورئ چې په هغې كې د شفاء پر محكمه د ديوبندي مشر د واكدارۍ كامل ثبوت ترلاسه كيږي: ارواح ثلاثه كې خان صاحب كيسه بيانوي: نواب لطف خان رئیس چھتاری بیمار ہو گئے۔ دعا کروانے کے لئے حبیب الرحمن نے مولانا گنگوہی کو کہا تو فرمایا کہ مجھے تو ان کی صحت کی طرف سے مایوسی ہے۔ کیا کروں میرے دل میں ان کی صحت آتی ہی نہیں۔ چند مہینے بعد پھر دعا کے لئے کہا مگر یہی جواب دیا۔ لوگوں نے اصرار کیا بس یوں فرما دیں کہ اچھے ہو جائیں فرمایا کہ بھائی ایک تو ایسا کہنا ہو تا ہے جیسا کہ ابھی مدرسے کے بارے میں کہا تھا (مولانا حافظ محمد نے مدرسہ دیوبند کے خلاف مخالفتوں اور اپنی پریشانیوں کا تذکرہ کیا ۔مولانا سنتے رہے۔ آخر ایک دم تکئے سے اٹھ کر سید ھے ہو بیٹھے اور انگلی سے اشارہ کر کے فرمایا کہ کچھ نہیں ہوگا۔ اس پر مولانا اشرف علی خان صاحب حاشیہ چڑھاتے ہیں۔ یہ جو مدرسہ دیوبند کے بارے میں فرمایا یہ ظہور تھا (شان کا إن السكينة تنطق على لسان عمر) اور ایک کہلوانے سے کہنا انہوں نے عرض کیا نہیں حضرت بس یہی جملہ فرما دیں۔ فرمایا کہ اچھا بھائی تم کہتے ہو میں کہتا ہوں ان شاءاللہ اچھے ہو جائیں گے۔ تیسرے دن ہی خط پہنچا کہ لطف علی خان اچھے ہو گئے اور اگلے دن اطلاع آگئی انتقال ہو گیا۔ [ارواح ثلاثه ص312]

ژباړه: جناب لطف خان د چهتاري رئيس ناروغ شو، حبيب الرحمن صاحب د دعا لپاره مولانا ګنګوهي ته وويل نو هغه ورته وويل: زه خو د هغه له ژوند څخه نا هيلى (نا اميده) شوى يم، څه وكړم؟ زما په زړه كې د هغه روغتيا نه راځي، څو مياشتې وروسته يې بيا ورته د دعا لپاره وويل: هغه بيا همدغه ځواب وركړ، خلكو ورته اسرار وكړ او بيا يې ورته وويل چې ته يوازې داسې ووايه چې ښه به شي. هغه ورته وويل: وروره! يو خو يوازې داسې

ویل وي لکه ما چې اوس د مدرسې په اړه وویل؛ [(مولانا حافظ محمد صاحب د دیوبند د مدرسې په خلاف د مخالفتونو او خپلو تشویشونو یادونه وکړه. مولانا دا خبرې اورېدلې، په پای کې له بالښت (تکیې) څخه را نیغ شو (تیکه کول یې پرېښودل)، کیناست او د ګوتې د اشارې په ملتیا یې وویل: هیڅ به نه وربانديې کیږي. مولانا اشرف علي خان صاحب په دې باندې حاشیه لیکلې: چې دا کومې خبرې یې د دیوبند د مدرسې په اړه وکړې، دا د هغه شان او حالت ظهور و چې (إن السكينة تنطق على لسان عمر رضى الله عنه)] او یو په زور ویل وي، هغوی ورته بیا وویل چې: بس یوازې همدغه خبره وکړه نو هغه ورته وویل: خه چې تاسې وایاست، زه وایم چې ان شاء الله هغه به ښه کیږي، له دې څخه وروسته په درېمه ورځ لیک راغی چې لطف علي خان صاحب روغ شو او په سبا ورځ باندې خبر راغی چې هغه مړ شو.

د نواب صاحب له روغتیا څخه د مایوسی اظهار او بیا د خلکو په اصرار یې له مجبورای وویل نو سمدستي د کُنْ کلیمې په څېر عمل وشو او روغ شو خو دا خبره یې له مجبورۍ کړې وه، له دې امله چې کومه روغتیا یې د کُنْ په کلمه ترلاسه کړې وه خو د تقدیر په لیك د مرګ پرېکړه حضرت صاحب لیدله (د څه له امله چې هغه ځان له دعا کولو ژغورل غوښتل) خو بیا هم مرګ خپلې پنجې خښې کړې او مړ شو.

## د کُنْ د کلمې په سبب د شفاء ترلاسه کول

یوه بله کیسه واورئ: اتفاق کہ بات ہے کہ مولوی مظفر حسین کی والدہ علیل ہو گئیں۔ ہر قسم کا علاج کیا کوئی فائدہ نہ ہوا۔ جب بالکل مایوس ہو گئے تو ایک فقیر ملا اور کہا حافظ صاحب سے یہ کہلا دو کہ اچھی ہو جا۔ پھر اچھی ہونے کا میں ذمہ دار ہوں۔ سب لوگ حافظ ضامن کے سر ہو گئے۔ وہ انکار کرتے رہے۔ قضیانی حافظ ضامن صاحب کی بہن تھیں۔ بہت اصرار پر آپ نے فرمایا کہ کاندھلہ سے اپنی لڑکی بی رحمت کو بلالو جب کہوں گا۔ اول تو بہت پس و پیش ہوئی بعد میں مجبورا بلانا پڑا۔ ان کے پہنچتے ہی خود بخود صحت شروع ہو گئی۔ [ارواح ثلاثہ ص320]

ژباړه: د اتفاق خبره ده چې د مولوي مظفر حسین صاحب مور سخته ناروغه شوه، هر ډول درملنې څه ګټه ونکړه، کله چې پوره ناهیلې شو نو یو فقیر (درویش یا ملنګ) ورته میلاو شو او ورته یې وویل: حافظ صاحب ته دا خبره وکړه چې ښه شي، بیا د هغې د روغتیا زمه وار زه خپله یم، ټول خلک حافظ ضامن صاحب پسې شول خو هغه انکار کاوه. قضیاني د حافظ ضامن صاحب خور وه، له ډېر ټینګار څخه وروسته یې ورته وویل: له کاندهله څخه خپله لور بي بي رحمت را وغواړه کله چې زه درته ووایم، لمړی یې ډېر مخکې وروسته وکړل خو په پای کې یې له ډېرې مجبورۍ هغه راوغوښتله او د هغې رارسېدو سره سم پخپله روغتیا پیل شوه.

د علاج له ناکامی څخه وروسته د دیوبندي سوالګر دا دعوه چې د حافظ ضامن صاحب دا خبره چې جوړه شي نو له دې څخه وروسته یې د روغتیا زه زمه وار یم نو آیا دا د الوهیت دعوه نه ده؟ نور څه کېدلای شي؟ او دا د نبي صلی الله علیه وسلم فرمان نه دی؟!: («لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ، فَإِذَا أُصِيبَ دَوَاءُ الدَّاءِ بَرَأَ بِإِذْنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ») [رواه مسلم]

ژباړه: د هرې ناروغی یوه دوا وي، کله چې دوا ناروغی ته ورسیږي نو د الله په حکم سره ورته شفاء ورکول کیږي.

د دوا په سبب شفاء هغه وخت راتللی شي، کله چې د الله خوښه وي او که د الله خوښه نه وي نو دوایي چې د هغې د شفاء سبب دی نو بیا دا هم څه ګټه نشي رسولای. دا معلومه نه ده چې هغه سوالګر کوم چې د ضامن د کُن له کلمې څخه وروسته د ښه کیدو زمه واري اخلي نو د وحدت الوجود د عقیدې په اساس هغه د الله ذات دی او که هغه ته د شفاء واک ورکړای شوی دی او بیا د بي بي رحمت له راتلو سره یې روغتیا نصیب شوي وه. یعنې د کُن د کلمې ویلو اړتیا پیښه نه شوه، هغه بې رحمته بي بي ښځه وه او که الهي رحمت و.

د ناروغ او شفاء (روغتیا) په سلسله کې د حاجي امداد الله صاحب د

بشودل شوي ذکر يو عجيبه تصرف وګورئ، د ارواح ثلاثه مصنف ليکي:

عجيبه تصرف حاجی امداد اللہ مہاجر مکی سے ایک شخص بیعت ہوا۔ اس شرط پر کہ نماز نہ پڑھوں گا اور ناچ دیکھوں گا۔ حاجی صاحب نے ایک شرط پر بیعت کر لیا کہ "ہم تھوڑا سا ذکر بتلائیں گے اس کو کرلیا کرنا۔ انہوں نے کہا بہت اچھا۔ اس ذکر کا ان پر یہ اثر ہوا کہ جب نماز کا وقت آیا تو دفعتہ بدن میں خارش شروع ہوئی۔ اب جو تدبیر بھی اس کے رفع کی گئی وہی الٹی پڑی۔ کہیں چنبیلی کا تیل مل رہے ہیں کہیں اور تدبیر کر رہے ہیں مگر کچھ افاقہ نہیں ہوا۔ پھر جی میں آیا کہ لاو ٹھنڈے پانی سے منہ ہاتھ ہی دھووں۔ جو دھو چکے پھر خیال آیا کہ سب اعضاء تو دھل گئے لاو مسح بھی کرلوں۔ وضو کا تمام ہونا تھا کہ خارش آدھی رہ گئی۔ پھر جی میں آیا لاو نماز بھی پڑھ لوں۔ کوئی یہ شرط تھوڑا ہی تھی کہ بالکل ہی نہ پڑھوں گا نماز کا شروع کرنا تھا کہ ندارد ہونا پھر جب اگلی نماز کا وقت آیا وہی خارش پھر شروع ہوئی اور نماز اسی طرح شروع کرتے ہی جاتی رہی۔ اب سمجھے کہ بڑے میاں نے یعنی حاجی صاحب قدس سرہ العزیز نے پہرہ بٹھایا ہے۔ نمازی ہو گئے۔ [ارواح ثلاثه ص401]

ژباړه: له حاجي امداد الله مهاجر مکي صاحب سره يو چا په دې شرط بيعت وکړ چې لمونځ به نه کوم، نڅا (ډانس او ګډا) به ګورم؛ حاجي صاحب يې په دې شرط بيعت قبول کړ چې زه به لږ څه ذکر وښايم، هغه درسره کوه؛ هغه وويل: دا ډيره ښه خبره ده. دې ذکر په هغه دومره لوی تاثير وکړ چې د لمانځه وخت به را نږدې شو نو د هغه په بدن به يو عجيب خارښ (بخار) پيل کړ او د دې په وړاندې به يې چې کوم تدبير څخه کار اخيست هغه به ناکام شو، کله به يې د چنبيلي (يو ګل) په تيلو ځان غوړ کړ او کله به يې له بل تدبير څخه کار واخيست خو هيڅ نتيجه به يې نه ورکوله. بيا يې په زړه کې راغله چې راشه په يخو اوبو لاس او خوله ووينځه، اندامونه چې لامده شول، بيا خيال راغی چې راشه مسحه هم وکړه، د اودس په تماميدو سره د هغه خارښ تقريبا نيم په نيمه شو، بيا يې په زړه کې دا راغله چې له دې سره لمونځ هم اداء کړه ځکه داسې شرط خو نه و چې زه به يې بلکل نه اداء کوم نو لمونځ يې چې پيل کړ، خارښ يې مکمل ختم شو، بيا چې د بل لمونځ وخت نږدې شو نو بيا ورباندې خارښ پيل وکړ او د لمونځ په پيل کولو سره ورباندې هغه خارښ ختم شو، اوس پوهه شو چې مشر يا لوی ميا يعني حاجي صاحب قدس سره ما باندې پيره کينولې ده، له هغې څخه وروسته هغه لمونځ کوونکی وګرځيد.

د خارښ پيل کيدل، د هغه د ورښودل شوي ذکر له امله و، د دې شاته د حاجي صاحب لاس و ځکه د مريد صاحب له خولې څخه بې اختياره خبره ووته چې حاجي صاحب ورباندې څوکيداري پيل کړې ده، بيا له اودس کولو سره خارښ نيم کيدل او له لمونځ سره پوره ښه کېدل، که دا د حاجي صاحب تصرف نه وي؛ نو نور د چا کمال کيدای شي؟ خان صاحب همدا رنګه يوه بله کيسه بيانوي:

حکیم عبد الواحد جلیسر کے رہنے والے تھے۔ کسی نقشبندی بزرگ سے بیعت تھے میں نے ایک مرتبہ ان کو دبلا پایا تو ان سے حالت دریافت کی۔ انہوں نے فرمایا کہ میں چند روز سے سخت تکلیف میں ہوں۔ میرے اوپر بجلی گرتی ہے۔ کبھی رات کو اور کبھی دن کو اور میں مرجاتا ہوں اور سخت تکلیف سے مرتا ہوں اور اس کے بعد زندہ ہوتا ہوں تو تکلیف سے ہوتا ہوں۔ یہ بجلی اگر سوتے میں گرتی ہے تو بالکل خاکستر ہو جاتا ہوں۔ ان کے پیر کا انتقال ہو چکا تھا۔ اس لئے انہوں نے مجھ سے مشورہ لیا۔ میں نے کہا مولانا گنگوہی کو لکھو مولانا نے خط کا جواب دیا کہ یہ باتیں تحریر میں آنے کی نہیں ان کو میرے پاس بھیج دو۔ اس پر وہ گئے اور جاتے ہی بلا کہے سنے اچھے ہو گئے۔ (ذرا اشرف علی کا حاشیہ بھی سن لیں) اگر یہ تصرف ہے تو اس کے اخفاء کیلئے کسی حیلہ کا اہتمام نہ فرمانا بھی ایک مذاق ہے۔

ژباړه: حکيم عبد الواحد د جليسر اوسيدونکی و، له کوم نقشبندي

بزرگ سره يې بيعت کړی و، ما هغه يوځل ډېرې کمزورۍ په حال وليد نو پوښتنه مې ترې وکړه، هغه وويل چې زه له څو ورځو راهيسي ډېر په تکليف يم او په ما باندې برق (بربښنا) راغورځيږي، کله په شپه او کله په ورځ کې او زه مړ کيږم او ډېر په تکليف سره مړ کيږم. له دې څخه وروسته ژوندی کيږم او ډېر په تکليف سره ژوندی کيږم. که دا برق په خوب کې رابانديې را وغورځيږي نو زه بلکل ذره، ذره کيږم، د ده پير صاحب مړ شوی و نو په دې خاطر يې له ما څخه مشوره واخيسته، ما ورته ځواب ورکړ: مولانا ګنګوهي صاحب ته خط وليکه. نو د هغه له لوري ورته ځواب راغی چې دا مسئلې په خط سره نه بلکې دا ماته راوليږئ، نو هغه ورغللو او له رسيدو سره سم، له ويلو او اوريدلو پرته روغ شو. (په دې اړه د اشرف علي تهانوي حاشيه هم واورئ) چې که دا تصرف وي نو د دې د پټولو لپاره د څه حيلې نه لټول هم يو ټوکه ده.

يعنې دا واضحه بيان دی چې ګنګوهي په شفاء ورکولو باندې تصرف درلود.

د دې حضراتو يوه بله کارنامه واورئ:

## عجيبه عمليات

حاجي امداد الله وايي: نفاع نامی شخص کو مجھ سے بہت محبت تھی۔ ایک دفعہ بدویوں سے لڑائی کے دوران گولی لگ کر اندر رہ گئی۔ باوجود دوا علاج کے کئی مہینے تک اچھا نہ ہوا۔ میرے پاس دعا کو کہلا بھیجا۔ پھر میرے پاس آیا میں نے اس کی بیماری کا حال پوچھا جواب دیا کہ مجھ کو حالت یاس کی ہوئی تو آپ کی طرف ملتجی ہوا دیکھا کہ آپ نے میرا پیر پکڑ کر دبایا اور گولی کو نکال کر باہر پھینک دیا۔ صبح کو گولی خود بخود نکل گئی۔ [شمائم امدادیہ ص100]

ژباړه: د نفاع په نوم د يو کس له ما سره ډېره مينه وه، يو ځل له بانډه چيانو (کوچيانو) سره په جنګ کې په هغه مرمۍ ولګېده او دننه پاتې شوه، د څو مياشتو له علاج او درملنې څخه وروسته هم روغ نشو، له ما يې د دعا غوښتنه وکړه، بيا زما خواته راغی او ما يې د ناروغۍ پوښتنه وکړه؟ نو هغه ځواب راکړه چې زه د نا امېدۍ په حالت کې وم او ستا طرف ته مې التجاء (توجه) وکړه نو تا زما پښه ونيوله او زور دي ورکړ، مرمۍ دې راووېسته او ګزار دې کړه، سهار هغه مرمۍ په خپله ووتله.

دا څومره عجيب عمليات دی چې ډاکټر له ناروغ سره دی او داسې ډاکټر چې ناروغ له مايوسۍ وروسته د الله لور ته نه بلکې د خپل شيخ او پير لور ته متوجې شو او التجاء يې وکړه او هغه يې لاس ونيو او هغه مرمۍ يې ورځخه وويستله او سهار هغه مرمۍ خپله ووتله.

په دې کيسه کې څومره شرکونه دي، امداد الله په لور يې توجه وکړه، او امداد الله ورغی مرمۍ يې ترې وويسته او سهار رښتيا هم ترې ووتله.

پرته له اسبابو امداد الله دا هر څه ترسره کړل او دې کس باندې يې کوم رد ونه کړ چې سخته کې الله تعالی ته رجوع کوه بلکې ډېر په فخر دا کيسه بيانوي او خپل تصرف ثابتوي !!

دا واخلئ! د مرمۍ لګيدو، بيا د وتلو او بيا د جوړيدو يوه بله عجيبه کيسه واورئ! مولانا نجيب ليکي:
اس سلسلے میں مولانا نانوتوی کو بھی گولی لگی تھی اور وہ بھی پٹ پڑی پر جو انتہائی نازک مقام ہوتا ہے اس سے داڑھی کے کچھ بال بھی جل گئے۔ لوگوں نے سمجھا کہ شہید ہو گئے مگر ایک دم ہمت سے اٹھے اور چہرے پر ہاتھ پھیرا تو ایسا تھا کہ جیسے کچھ ہوا ہی نہیں۔ [سوانح قاسمی ج4/ ص160]

ژباړه: په دې سلسله کې مولانا قاسم نانوتوي هم په مرمۍ لګېدلی وه او هغه هم په ځنه باندې لګيدلی و، ډېر نازک ځای وي چې له امله يې د هغه د ږيرې څه ويښته هم وسوځيدل، د خلکو دا ګمان و چې دا شهيد شوی دی خو هغه همت وکړ او ناڅاپه راپورته شو او په خپل مخ يې لاس تير کړ نو د هغه مخ داسې شو چې هيڅ وربانديې نه وي شوي.

د دې کيسې کامل وضاحت مولانا عاشق الهي په دې ټکو کړی ده:
کہ حضرت مولانا قاسم العلوم ایک مرتبہ سر پکڑ کر بیٹھ گئے۔ بعض نے دیکھا کہ کنپٹی پر گولی لگی

اور دماغ پار کر کے نکل گئی۔ اعلی حضرت (مراد حضرت مولانا گنگوہی صاحب ہیں) نے لپک کر زخم پر ہاتھ رکھا اور فرمایا کیا ہوا میاں؟ اسکے بعد عمامہ اتار کر سر جو دیکھا کہیں گولی کا نشان نہ ملا اور تعجب یہ ہوا کہ خون سے تمام کپڑے تر۔ [سوانح قاسمی ج2/ص160]

ژباړه: مولانا قاسم العلوم صاحب یو ځل سر ونیولو او کیناست، ځینو خلکو ولیدل چې د هغه په څنګه (د غوږ او سترګې ترمنځ د سر برخه) باندې مرمۍ لګېدلې او له مغزو څخه یې اخوا وتلې ده، اعلی حضرت صاحب (مطلب ورڅخه مولانا ګنګوهي دی) ورمخکې شو او لاس یې وربانديې کیښود او هغه ته یې وویل: څه شوي دي میا صاحب!؟ بیا یې پګړۍ لرې کړه او سر یې وکتلو نو د مرمۍ هیڅ نښان وربانديې نه و او د حیرانتیا خبره دا وه چې د هغه ټول کالي په وینو لامده وه.

دا کیسه مولانا یعقوب په دې الفاظو بیانوي: جب قاسم نانوتوی کو گولی لگی تو پوچھا کیا ہوا؟ فرمایا گولی لگی عمامہ اتار کر جو دیکھا کہیں گولی کا نشان نہ ملا اور تعجب ہے کہ خون سے تمام کپڑے تر۔ [سوانح قاسمی ج2/ص160]

ژباړه: کله چې په نانوتوي مرمۍ ولګیده نو پوښتنه ځینې وکړه چې څه شوي دي؟ ویې ویل: مرمۍ باندې ولګیدم، پګړۍ یې ورڅخه لرې کړه نو د هغه په هیڅ ځای د مرمۍ نښه نه وه او حیرانتیا وړ ده چې ټول کالي یې په وینو لامده وه.

په دې کیسه کې د درې واړو راویانو په دې اتفاق دی چې دغه مرمۍ په سر باندې لګیدلې وه خو د هغې څه نوم او نښان ونه موندل شو، یوازې دا چې د هغه ټولې جامې لمدې وې، په دې کیسه به خاورې تبصره وکړي، په اړه یې خپله د دیوبندي حضراتو تبصره واورئ:

مولانا احسن ګیلاني وایي چې: بہر حال حاصل یہی ہے کہ گولی کھانے کے بعد جو کچھ بھی ہونا چاہیے تھا وہ نہ ہوا یہی لوگوں کا مشاہدہ ہے۔ اب اس کی توجیہ کچھ بھی کی جائے خواہ سیدنا امام الکبیر کے باطنی تصرف کا نتیجہ اس کو ٹھہرایا جائے جیسا کہ مولانا طیب صاحب کی روایت سے بظاہر معلوم ہوتا ہے یا حضرت گنگوہی کی توجہ کو اس میں دخیل مانا جائے جس کی طرف مولانا عاشق الہی کے بیان میں ایما کیا گیا ہے۔ پھر لکھتے ہیں کہ حافظ شہید کے ساتھ بھی چاہا تو یہی کر کے دکھایا جا سکتا تھا۔ [سوانح قاسمی ج2/ص164]

ژباړه: په هر حال د دې کیسي نتیجه دا ده چې مرمۍ وربانديې لګیدلې او د مرمۍ چې کوم اثر و هغه وربانديې نه و او همدا د خلکو لیدلې خبره وه، که اوس د دې هر ډول وضاحت وکړای شي نو دا د امام الکبیر صاحب د باطني تصرف نتیجه کیدای شي، لکه څنګه چې دا خبره د مولانا طیب صاحب له روایت څخه معلومیږي او یا د حضرت ګنګوهي صاحب توجه ته په دې کې ځای ورکړل شي، کوم ته چې د مولانا عاشق الهي صاحب په خبره اشاره شوې ده، بیا هغه لیکي: که د حافظ شهید صاحب په اړه یې خوښه وای، نو همدا عمل ترسره کولو سره ښکاره کیدای شو.

یعنې حافظ ضامن صاحب په اړه یې که خوښه وای او هغه یې نه شهید کولای او د هغه ژوند یې هدف وای نو هغه ته هم دوی شفاء ورکولای شوه.

اې مسلمانانو! آیا له دې څخه وروسته هم د الوهیت په تصرف کې څه کمی پاتې دی؟ آیا دوی د مرګ ژوند او صحت ورکولو حق کې خپل مشران او بزرګان د الله تعالی سره شریک نه کړل؟ (استغفر الله) طیب صاحب په دې کیسه باندې دا ډول تبصره کوي: د مصنف امام یعقوب صاحب له خبرو څخه دا خبره معلومیږي چې د مرمۍ بې اثره پاتې کیدل، دا خپله د حضرت صاحب کرامت و، بیا وایي: کہ میں نے متعدد بزرگوں سے سنا کہ حاجی امداد اللہ صاحب قدس سرہ نے ایک تعویذ بھی دیا کہ اسے پگڑی میں رکھیں۔ بعض ثقات سے مسموع ہوا ہے کہ حضرت حافظ صاحب شہید نے انگلی سے اپنا لعاب دہن پیشانی پر لگا دیا ۔ مولانا عاشق علی نے حضرت گنگوہی کے تصرف کی طرف ایما کیا ہے۔ [سوانح قاسمی ج2/ص161]

ژباړه: ما له ډېرو بزرګانو څخه اورېدلي چې حاجي امداد الله

صاحب ورته يو تعويذ هم ورکړی و چې ته دا تعويذ پخپله پګړۍ کې کېده او له ځينې معتبرو خلکو څخه اوريدل شوي دي چې حضرت حافظ صاحب خپله ګوته بانډې د خپلې خولې لاړې په تندي ولګولې، مولانا عاشق الهي د مولانا ګنګوهي د تصرف طرف ته اشاره کړې ده.

د دوی د (يحيي ويميت) والا تصرف دوی د الوهيت منصب ته کش کولای شي، په دې کې د نورو خبرو هيڅ اړتيا نشته ځکه داسې روغه دعوه ولې نه کوئ چې "أنا أحيي وأميت" يعنې زه ژوندي کول او مړه کول کولای شم، لکه څنګه چې مې قاسم نانوتوي صاحب په مغزو کې له مرمۍ تېرېدو څخه وروسته هم ژوندی کړی و او حافظ ضامن صاحب ما مړ کړ، دا ځکه چې هغه ژوندي اوسيدل نه خوښول او که ما غوښتي وای نو هغه به هم ژوندی وای، دې کې د خپلې خوښې څومره اختيار او تصرف دی؟!!! رهبانيت (پير پرستي) رهبانيت (د دنيا پرېښودل) د نصاراوو تګلار ده، الله تعالی فرمايلي: ﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَٰهَا عَلَيْهِمْ﴾ [سُورَةُ الحَدِيد: 27] ژباړه: او رهبانيت هغوی پخپله رامنځته کړ، مونږ هغه پر هغوبانډې نه و فرض کړی.

**(لا رهبانية في الاسلام)** [الحديث]

ژباړه: يعنې په اسلام کې رهبانيت نشته.

اوس واخله، د کوم اسلام ښکارندويي چې د ديوبند علماء کوي نو هغه کوم ډول اسلام دی؟ دا تاسو خپله وګورئ: **بعد از ان گوشئہ قلب مبارک میں جذبہ الہیہ پیدا ہوا اور آپ آبادی سے ویرانے کو چلے گئے مخلوق سے نفرت فرماتے تھے اور جنگل پنجاب وغیرہ میں بسر فرماتے تھے اور اکثر دولت فاقہ سے کہ سنت نبویہ صلی اللہ علیہ وسلم سے مشرف ہوتے تھے۔ یہاں تک کہ آٹھ آٹھ روز اور کبھی زیادہ گزر جاتے اور ذرا سی چیز حلق مبارک میں نہ جاتی اور حالت شدت بھوک سے اسرار و عجائب فاقہ مکشوف ہوتے تھے۔ [شمائم امدادیہ حصہ سوم ص10]**

ژباړه: له دې څخه وروسته د زړه په مبارکه ټوټه کې الهي جذبه پيدا شوه او هغه له ابادۍ څخه لرې لاړ، له مخلوق څخه يې کرکه کوله او پنجاب ځنګل کې اوسيدو او اکثر به د غريبۍ له دولت څخه په نبوي سنتو سره مشرف کيدلو، تر دې چې اته، اته (8) ورځې او کله به له دې هم ډېرې شوې، د حلق څخه ښکته هيڅ نه تلل او ډېرې لوږې په حالت کې به وربانډې اسرار او عجايب راښکاره کيدل.

د علماؤ کار د الله د مخلوق تزکيه او هغوی ته دعوت ورکول دي او دا په همدوی فرض ده او کله چې دا خلک له مخلوق څخه کرکه پيل کړي او ځنګلونو ته لاړ شي نو بيا به امر بالمعروف او نهي عن المنکر ملائک کوي او کمال دا دی چې اته، اته ورځې هيڅ شی له مرۍ څخه ښکته نه تلل، داسې معلوميږي چې د دې خلکو په بدن کې معده نشته ځکه له دې څخه ډېره عجيبه کيسه مولانا رشيد احمد ګنګوهي بيان کړې ده:

"شاہ عبدالقدوس رحمہ اللہ علیہ نے اپنے رسالے میں تحریر فرمایا ہے کہ الحمدللہ میرے زمانے میں ایک بزرگ ہیں شاید متقدمین میں بھی ایسا مجاہدہ کرنے والا کوئی نہ ہو۔ چالیس سال سے ہر روز صرف ایک بادام کھاتے ہیں اسی پر گزارہ ہے اس کے سوا دنیا کی کوئی چیز نہیں کھاتے۔ [ارواح ثلاثہ ص349]

ژباړه: شاه عبد القدوس صاحب په خپله رساله کې ليکلي: الحمدلله زما په زمانه کې يو بزرګ دی، کيدای شي چې په متقدمينو (مخکنيو يا سلفو) کې هم داسې مجاهده (کوښښ) کونکی څوک نه وي تېر شوی، له څلويښت کلونو راهيسې، هره ورځ يوازې يو بادام خوري، په دې يې ګوزاره ده، له دې پرته د دنيا هيڅ شی نه خوري.

نبي صلی الله عليه وسلم د خپل ځان په اړه تر دې پورې وايي: **(وهو يطعمني ويسقيني)** [الحديث] ژباړه: يعنې همدغه الله ما ته خوراک او څښاک راکوي.

او له همدې امله له روژه ماتي پرته روژه نيسم، اې صحابوو! تاسو دا نشئ کولای او که هغوی ته به خوراک پيدا نشو نو په خپلو خيټو (ګېډو) پورې به يې ډبرې وتړلې، صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين هغه چې د هغوی په ولايت کې هيڅ شك او شبهه نشته،

د هغوی هم همدا حال وو چې ابو هريره رضي الله عنه به د لوږې له امله بې هوښه شو او په دې ځای کې دا صاحب اته، اته ورځې څه نه خوري، بل لور ته يو صاحب ځلويښت کاله په يو بادام باندي ګوزاره کوي، د بې هوښۍ او سر دردۍ پر ځای ورباندي عجيب او نا اشنا اسرار راښکاره کيږي.

دغه خرافاتو ليکلو پروخت معلومه نه ده چې د دوی عقل کوم ځای ته ورتوليږي او ساتل کيږي؛ يوه بله کيسه له حاجي امداد الله څخه واورئ:

## د ځناورو مزې

هغه وايي: ایک دن دیکھا کہ سات ڈھانچے ہڈیوں کے مسلم رکھے ہیں- دریافت ہوا کہ ایک درندے نے خدا سے دعا مانگی کہ مجھ کو اپنے دوستوں کا گوشت کھلا- ساتوں آدمی پیش کئے گئے اور اس درندے نے گوشت ان مردان خدا کا کھانا شروع کیا جس وقت درندہ دانت مارتا وہ لوگ ہرگز دم نہ مارتے یہاں تک کہ تمام گوشت اپنا راہ مولا میں نثار کر دیا صرف ہڈیاں باقی رہ گئیں- [شمائم امدادیہ حصہ دوم ص44]

ژباړه: يوه ورځ ما وليدل چې د هډوکو اوه (7) روغ اسکليټونه پراته و نو معلومه شوه چې يو ځناور له الله څخه دعا کړې وه چې په ما باندي د خپلو دوستانو غوښه وخوره نو دغه اووه انسانان ورباندي پيش کړای شول او دغه ځناور د الله د دې بندګانو غوښه وخوړه او کله چې به ورباندي ځناور خوله وهله نو دغه خلکو به هيڅ حرکت نه کولو، تر دې پورې چې ټوله غوښه يې د الله لپاره قربان کړه، يوازې د هغوی هډوکي پاتې شول. د ځناور دا دعا په قران کې راغلې او که په حديث کې؟ که نه وي نو هغه په دې باندي څنګه خبر شوی و؟ ﴿هَاتُوا بُرْهَٰنَكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ [سُورَةُ النَّمل: 64] ژباړه: تاسې خپل دليل راوړئ، که رښتيني ياست. څنګه چې رهبانيت بدعت دی همدا رنګه د دې خلکو له بدعتيانو سره مينه ده، په ارواح ثلاثه کې دي: ایک مرتبہ مولانا نانوتوی کے یہاں ایک بدعتی درویش مگر صاحب حال مہمان ہوئے تو آپ نے اس کا بڑا اکرام کیا- [ارواح ثلاثه ص487]

ژباړه: يوه ورځ د مولانا نانوتوي خواته يو بدعتي ملنګ خو صاحب حال ميلمه و؛ هغه راغی نو نانوتوي صاحب د هغه ډېر زيات عزت وکړ. او د نبي صلی الله عليه وسلم دا ارشاد يې هير کړ: («مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْ أَعَانَ عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ») [الشريعة للآجري وسنده صحيح]

ژباړه: چا چې د يو بدعتي قدر او عزت وکړو نو دې انسان د اسلام په ورانولو کې مرسته وکړه.

د بني آدم وژل د کوم قوت او قدرت ښکارندوينه چې ابراهيم صلی الله عليه وسلم د خپل رب لپاره کوي: ﴿رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ﴾ [سُورَةُ البَقَرَة: 258]

ژباړه: زما رب هغه ذات دی چې هغه ژوندي کول او مړه کول کوي.

اوس د دې قوت اظهار په علماء ديوبند کې وګورئ، سوانح قاسمي کې وايي: په يو ځای کې د مولانا قاسم نانوتوي صاحب د وعظ پروګرام و، شيعه ګانو د دې غونډې د ناکامولو لپاره د لکهنؤ سيمې څخه څلور مجتهدين راوبلل او هر يو ته يې لس، لس اعتراضونه ورکړل او د غونډې څلورو طرفونو ته يې کينول، حضرت صاحب د هر يو مجتهد د زړه اعتراضونو ته په هغه ترتيب سره ځوابونه ورکړل، په کوم ترتيب سره چې هغوی په خپل زړه کې ساتلي و، مجتهدينو او ځايي شيعه چودريانو (ملکانو) د دې د بدل اخيستلو لپاره يوه درواغجنه جنازه جوړه کړه، رازئ له دې څخه وروسته کيسه د سوانح قاسمي ليکوال څخه اورو: "پروگرام یہ تھا کہ جب حضرت دو تکبیریں کہہ دیں تو صاحب جنازہ ایک دم کھڑا ہو اور اس پر حضرت کے ساتھ استہزاء و تمسخر کیا جائے- حضرت والا نے کہا آپ لوگ شیعہ ہیں اور میں سنی ہوں- اصول نماز الگ الگ ہیں آپ کے جنازے کی نماز مجھ سے پڑھوانی جائز کب ہوگی- شیعوں نے عرض کیا کہ حضرت بزرگ ہر قوم کا بزرگ ہوتا ہے- آپ تو نماز پڑھا ہی دیں- حضرت نے ان کے اصرار پر منظور فرما لیا اور جنازے پر پہنچ گئے- مجمع تھا حضرت ایک طرف کھڑے ہوئے تھے کہ چہرے پر غصے کے آثار دیکھے گئے- آنکھیں سرخ

